

د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو
د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو
د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د دیني ښوونې

# د تدریس لارښود

## پنځم ټولگی






moe.curriculum@gmail.com



د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش




**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د
ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود

# اسلامي ښوونه او روزنه

## پنځم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۷هـ.ش

**ليكوالان**

– نور الله (توحيدي) علمي غړی.

– شهيد الله (عزيزي) علمي غړی.

**علمي او مسلکي اډېټ**

– محمد عارف لودين

**ديني، سياسي او کلتوري کمېټه**

ـ محمد آصف کوچی

ـ حبيب الله راحل

## د څارنې کمېټه

ـ دوکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معين.

ـ دوکتور شيرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې رئيس.

ـ دکتور محمد يوسف نيازی د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونود تأليف د لوی رياست سرپرست.

**کمپوز او ډيزاين**

**عنايت الله غفاری**



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی يې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، گوجر دي — پاميريان، نورستانيان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ايماق، هم پشه يان

دا هيواد به تل ځليږي — لکه لمر پر شنه اسمان

په سينه کې د اسيا به — لکه زړه وي جاويدان

نوم د حق مودی رهبر — وايو الله اکبر وايو الله اکبر

# د پوهنې د وزیر پیغام

د لوی خدای ﷻ ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډیر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفی ﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنایی پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تألیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تألیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم یې چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه چې د تورتم او ناپوهی په وړاندې یې هڅه اوهاند خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برى د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم چې له ټولو پوهو مولفینو او د پوهنې د وزارت له اداري او فني کارکوونکو څخه چې د دغه کتاب په چمتو کولو کې یې زیار ایستلی او له ټولو ملي او نړیوالو بنسټونو څخه چې د درسي کتابونو د چاپ او ویش په برخه کې یې مرسته کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدای ﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانی له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

دوکتور اسدالله حنیف بلخي

**لوست: لومړی**

**سرلیک: د انسان پیدایښت**

صفحه:

وخت: درې درسي ساعتونه

**موخې: زده کوونکي باید:**

۱. په دې پوه شي چې د ټولوکائناتو پیداکوونکی الله –جل جلاله– دی، او ټول مخلوقات ده پیدا کړي دي.

۲. وکولای شي چې نورو ته ددي معلومات ورکړي چې الله – جل جلاله– د ټولو مخلوقاتو پیدا کوونکی دي.

۳. الله –جل جلاله– یو وګڼي، او د هغه تسبیح او پاکوالی بیان کړي.

د لوست میتودونه : نمونه یي لوستل – سوال او ځواب – یو کسیزه مطالعه .

د لوست مرستندویه توکي: کتاب؛ کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د انسان پیدایښت چې ادم –علیه السلام– دی له ختې څخه پیدا شوی دی،او بیا په نسلي ډول له نطفې څخه پیدایښت روان دی. په مخلوقاتو کې غوره مخلوق انسانان دي، او په انسانانو کې رسولان او انبیا دي، بیا د غوره پیرېو لکه صحابه او تابعین، بیا ټول هغه تقوا لرونکي خلک چې په ځان کې یې پیدا کړي وي دي،په انسانانو الله–جل جلاله– ډیر بې شمیره نعمتونه کړي دي، نو انسان ته پکار دي چې د الله –جل جلاله– ددې نعمتونو شکر ادا کړي، او د هغه عبادت وکړي، ځکه انسانان او پیریان د عبادت لپاره پیدا شوي دي، الله جل جلاله– فرمايلي دي: ﴿ وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴾ (الذاريات:۵۶)ژباړه: او ما نه دي پیدا کړي پیریان او انسانان مګر دا چې زما عبادت وکړي.

انسان باید د خپل بدن د هر بند صدقه ورکړي، رسول الله– صلی الله علیه وسلم– فرمایلي دي:﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم : كُلُّ سُلاَمَى مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ كُلَّ يَوْمٍ تَطْلُعُ فِيهِ الشَّمْسُ يَعْدِلُ بَيْنَ الاِثْنَيْنِ صَدَقَةٌ وَيُعِينُ الرَّجُلَ عَلَى دَابَّتِهِ فَيَحْمِلُ عَلَيْهَا ، أَوْ يَرْفَعُ عَلَيْهَا مَتَاعَهُ صَدَقَةٌ وَالْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ وَكُلُّ خَطْوَةٍ يَخْطُوهَا إِلَى الصَّلاَةِ صَدَقَةٌ وَيُمِيطُ الأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ صَدَقَةٌ.﴾ متفق عليه.

ژباړه: له ابوهریره–رضي الله عنه–څخه روایت دی وایي چې رسول الله–صلی الله علیه وسلم– فرمایلي دي د خلکو په هر بند باندې صدقه لازمه ده، په هره ورځ کې چې لمر راخیژي او دا د دوو کسانو منځ کې په انصاف صلحه کوي صدقه ده، د یوکس سره د هغه په سورلۍ کې د هغه په اوچتولو کې مرسته کوي او یا د هغه د بار اوچتولو کې ورسره مرسته کوي صدقه ده، ښکلي خبره صدقه ده، هر قدم چې د لمانځه لپاره اخلي صدقه ده، له لارې څخه ضرري شیان لرې کوي صدقه ده.

**د لوست بهیر**:

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سریزه ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د احوال پوښتنې، ټولګي تنظمیولو، حاضرۍ اخستلو څخه وروسته د پنځم ټولګي د اسلامي ښوونې او روزنې د زده کړې مضمون زده کوونکو ته وریپیژني، او د هغې د ګټو په اړه ورسره په مختصر ډول خبرې کوي. | زده کوونکي لوست ته په ښه توګه غوږ نیسي. |
| دلوست وړاندیز ۲۵دقیقې | پر تخته د نوي لوست عنوان (د انسان پیدایښت) له لیکلو څخه وروسته د زده‌کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>وروسته لوست د دریو زده کوونکو په واسطه لولي او ټولګی کنترولوي او د زده کوونکو تیروتني اصلاح کوي.<br>بیا زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله مطالعه کړي او خپله د ټولګي په هر طرف کې ګرځي او د ټولو زده کوونکو څخه څارنه کوي او ستونزې یې حلوي.<br>زده کوونکو ته ښوونه کوي تر څو هر یو دخپل ټولګیوال سره د انسان د پیدایښت په هکله خبرې اترې وکړي. | زده‌کوونکي لوست په چوپه خوله سره مطالعه کوي. |
| ۵ دقیقې | له څلورو زده کوونکو څخه غواړي تر څو هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د انسان د پیدایښت په اړه معلومات وړاندې کړي، او په ضمن کې یې تشویق هم کړي. | زده کوونکي دې په دوه کسیزه توګه د اسلامي ښوونې او روزنې په اړه خبرې اترې وکړي. |
| ۵ دقیقې | **لنډیز:**<br>الله –جل جلاله– یو دی او ادم –علیه السلام– یې له خاورې څخه پیدا کړی دی.<br>الله –جل جلاله– حواء –علیها السلام–د ادم –علیه السلام– له کیڼې پښتۍ پیدا کړې ده.<br>انسان د الله –جل جلاله– په مخلوقاتو کې تر ټولو غوره مخلوق دی. | |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی د لاندې پوښتنو په طرح کولو سره زده کوونکي ارزوي:<br>۱- څوک کولای شي ووایي چې د نن ورځې د لوست عنوان څه شی و؟<br>۲- څوک کولای شي ووایي چې ادم –علیه السلام– له څه شي څخه پیدا شوی دی؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې انسانان او نور مخلوقات چا پیدا کړي دي ؟ | څو زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي.<br>نور زده کوونکي سم ځوابونه یادوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده ورکوي. | |

**د لومړي لوست د پوښتنو ځوابونه**

- دانسانانو پلار ادم –علیه السلام– دی.
- الله تعالی ادم علیه السلام له خاورې څخه پیداکړ.
- انسانان، اسمانونه، ځمکه او نور مخلوقات الله تعالی پیدا کړي دي.
- په انسانانو کې غوره خلک تقوا لرونکي خلک دي.

**لوست: دويم**

**سرليک: وحي**

مخ:

وخت: دري درسي ساعتونه

د درس موخې:

زده کونکي باید:

۱- دوحې په معنا پوه شي، اودوحې راوړلو ملایکه وپیژني.

۲- د اسماني کتابونو نومونه وویلی شي.

۳- په ټولو اسماني کتابونو ایمان ولري.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

وحې په لغت کې په چټکۍ سره پټو خبرولوته ویل کیږي.

او په اصطلاح کې دکتاب،لیږل شوې ملائکې، خوب اویا الهام په واسطه د نبي خبرولوته وحې ویل کیږي.

د وحې ډولونه

1 - رښتیني خوبونه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لومړنۍ وحې همدا خوب وو.

2 - بې له دینه چې ملائکه ووینې په زړه کې به یې وحې وراچوله .

3 - ملائکه به دیو سړي په شکل راتله اوخبرې به یې ورسره کولې اورسول اکرم صلی الله علیه وسلم به یی خبرې یادولې په دې صورت کې به کله، کله صحابه وو هم جبرائیل لیده.

4 - د زنګ دګړنګار په شکل به راتله له ټولو وحیو څخه داسخته وه په دې وحې کې ملائکه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یوځای کیده او وحې پرې راتله په دې وخت کې به که سخت ژمی هم وو نودرسول الله صلی الله علیه وسلم تندی به له خولو ډک وو.

ملائکه به یې په هغه اصلي څیره لیدله په کومې چې پیدا شوې ده اوبیا به ورته ملائکې د الله–جل جلاله– له لورې لیږل شوې وحې راوړله د سورت النجم مطابق دا وحې یوازې دوه ځله راغلې.

اوبله هغه وحې چې دمعراج په شپه رسول الله له آسمانونوپورته وخوت لمونځ اونور احکام یی پرې نازل شول.

د حراپه غار کې دقرآن کریم دنزول پیل

د حرا غار دمکې مکرمې څخه دری کیلو متره لرې د(نور)په غره کې موقعیت لري، اودا یوعجیب کوچنی غار دی چې څلور ګزه اوږد والی اوپاو کم دوه ګزه پلنوالی لري.

حضرت عایشه–رضي الله عنها– فرمایي :درسول اکرم –صلی الله علیه وسلم– دوحي پیل له نیکو اوښو خوبونو څخه شوی وو هر خوب به یې چې ولید ه د روښانه سهار په څیر به ښکاره کیده. بیا ورته ګوښه ژوند کول غوره ښکاره او د حرا په غار کې له خلکو ګوښه او بې له دې چې خپل کورته ولاړ شي مسلسلې شپې به یې هلته عبادت کاوه،ددې ورځو مصرف به ورسره وو.دتوښې دخلاصیدو وروسته به خدیجې رضی الله عنها ته ورته او دومره نوره توښه به یې اخیسته ترڅو چې دحرا په غار کې ورته حق راغی.

ملائکه ورته راغله او ویې ویل : ووایه.

ماوویل . زه لوستل نه شم کولای.

رسول الله فرمايي:بيا ملائکې ټينګ په غيږ کې ونيوم او ښه يې راباندې زور کړل، بيا يې پريښودم او ويې ويل: ووايه!اما وويل: زه لوستلو والا نه يم، هغې زه دريم ځل ونيوم اوښه زور يې را باندې وکړبيا يې خوشې کړم او ويې ويل:

﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ (١) خَلَقَ الْإِنْسانَ مِنْ عَلَقٍ (٢) اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ (٣)﴾

دا دوحې دنزول پيل وو چه دحرا په غار کې وشو.

**د تدريس تګ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي مطالعه.

**مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه ۵ دقيقې<br><br>د لوست وړانديز ۲۵ دقيقې<br><br>۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظيمولو او حاضرۍ اخستلو ځخه وروسته مخکنی لوست ارزوي.<br>– د نوي لوست عنوان (وحې) له ليکلو ځخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او لوست په مناسب غږ سره لولي.<br>– له څو زده کوونکو ځخه غوښتنه کوي ترڅو هر يو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د وحي مانا او مقصد بيان کړي،که خطا شول استاد به يې نه رټي ، او مرسته به ورسره کوي او تشويق کوي به يې.<br>– وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو لوست په چوپه خوله سره مطالعه کړي او خپله په ټولګي کې ګرځي او د زده کوونکو څارنه کوي او ستونزې يې حلوي<br>– بيا لوست د دريو زده کوونکو په واسطه لولي<br>– او زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو هر يو دخپل ټولګيوال سره د وحې په اړه خبرې اترې وکړي. | زده کوونکي لوست ته غوږ نيسي.<br>څو زده کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راځي او خپلې کړنې سرته رسوي او نور زده کوونکي د هغه کړنو ته پام اړوي.<br><br>– زده کوونکي لوست په چوپه خوله سره لولي<br>زده کوونکي د وحې په اړه خبرې اترې کوي |
| ۱۰ دقيقې | **ارزونه:**<br>په راتلونکو پوښتنو ترسره کيږي:<br>وحې څه ته کيږي؟<br>پيغمبرانو ته وحې راوړل د کومې ملائکې وظيفه ده؟<br>انجيل په چا نازل شوی دی؟<br>په رسول الله –صلی الله عليه وسلم– لومړۍ وحې په کوم ځای کې رغله؟ | |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده ورکوي. | |

**د دویم لوست د پوښتنو ځوابونه:**

- د الله تعالی له لوري پیغمبرانو خبرولو ته وحې ویل کیږي.
- اسماني کتابونه څلور دي.
- د اسمانې کتابونو نومونه داسې دي: تورات، انجیل،زبور او قرآن کریم دي.
- تورات په موسی–علیه السلام–، انجیل په عیسی–علیه السلام–، زبور په داود –علیه السلام، او قرآن کریم په محمد– صلی الله علیه وسلم– نازل شوي دي.
- لومړی وحې د علق سورت پنځه لومړنې آیتونه دي چې د حرا په غار کې نازله شوه.

**لوست: دریم**

**سرلیک: معجزه**

مخ:

وخت: دري  درسي ساعتونه

موخې:

**زده کوونکي باید:**

**۱- د معجزې په مانا پوه شي.**

**۲- دا درک کړي چې ولې پیغمبر ته معجزه ورکول کیږي؟**

**۳- د معجزو د وضاحت په اړوند دلیلونه بیان کړای شي.**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د معجزې تعریف: دا هغه څه دي چې الله –جل جلاله– يې د عادت خلاف د نبوت مدعی په لاس منکرینو ته د چیلنج په وخت کې ښکاره کوي چې چیلنج کړی شوي ددي د راوړو څخه عاجز پاتي شي.**

**د معجزې شرطونه:**

**۱–معجزه د الله–جل جلاله– له اړخه وي، نه د بل چا له اړخه.**

**۲– د عادت (معمول) خلاف وي (عادي نه وي).**

**۳– د نبوت او پیغمبری دعوا کوونکې په لاس ظاهره شي.**

**۴– د مطلوب موافق وي، نه مخالف، په دې مانا چې پیغمبر څنگه ووایي همغسې وشي نه د هغې مخالف،چې هغې ته (اهانت)وایي، لکه د مسیلمة الکذاب چې غوښتل یي د یوکس سترگه روغه شي، کله چې یي د هغه په سترگه کې تف وکړ نه داچې روغه شوه بلکې روغه سترگه یي هم ړنده شوه.**

**۵– د نبوت د دعوا سره به یو ځای وي نه له دعوا څخه مخکې چې هغې ته (ارهاص)وایي.**

**٦– د دعوا کوونکې دروغجنونکې به نه وي، لکه چې ووایي: زما معجزه داده چې دا (جماد) لکه تیږه به خبرې کوي، بیا هغه تیږه ووایي: دا دعوا کوونکی دروغ وایي.دا پر دي دلیل دی چې نبي نه دی.**

**۷–مقابل جانب د هغه شي د راوړلو څخه عاجز پاتې شي،که مقابل اړخ همغسي راوړي نو دا معجزه نشې کیدای.**

**۸–دا به د قیامت دعلامو د ظاهریدو په وخت کې نه وي، لکه د لویدیځ له طرفه د لمر راختل، د دابة الأرض خبرې،د مسیح الدجال راتلل، ځکه دا معجزې نه بلل کیږي بلکې د قیامت علامې دي.**

**د تدریس تگ لاره**: انفرادي، پوښتنه او ځواب، مطالعه.

**مرستندویه توکي**: کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| سریزه۵ دقیقې<br><br>دلوست وړاندیز۲۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي، د بیلګې په توګه پوښتنه کوي:<br>-څوک کولای شي ووایي چې د وحې څه مانا ده؟<br>اسماني کتابونه کوم دي؟<br>-د نوي لوست د عنوان ( معجزه) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي او لوست په مناسب أواز سره لولي.<br>که درس وضاحت غوښته وضاحت ورکوي.<br>-وروسته یو څو زده کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته را غواړي او لوست وربانديې تکراروي او په هر زده کوونکي یوه کرښه لولي.<br>-ښاغلی ښوونکی زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د معجزې اړوند خبري په چوپه خوله د کتاب له مخې مطالعه کړي. | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه وایي.<br>زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي.<br>هغه زده کوونکي چې په کړنه ګمارل شوي په ښه شکل یې تر سره کوي.<br>زده کوونکي په چوپه خوله لوست مطالعه کوي. |
| ۵ دقیقې | لنډیز:<br>معجزه د پغمبرانو په لاس ترسره کیږي.<br>معجزه د پیغمبرۍ د رېښتینولۍ دلیل دی.<br>د محمد-صلی الله علیه وسلم- لویه معجزه قرآنکریم و.<br>د موسی-علیه السلام- معجزه له امسا څخه ښامار جوړیدل و. | |
| ۱۰ دقیقې | ارزونه:<br>ښوونکی د چوپې خولې مطالعې په بهیرکې د هر یوه ستونزې په أرامۍ سره حل کوي ترڅو په ټولګي کې أرامه او مناسبه فضا رامنځ ته شي او له نا أرامۍ څخه ډ ډه وشي.بیا په راټلونکې سوالونه **ارزونه کوي:**<br>۱- څوک کولای شي د معجزې تعریف ووایې؟<br>۲- معجزه د څه لپاره رسول ته ورکول کیږي؟<br>۳- څوک کولای شي ووایي چې د موسی-علیه السلام- معجزه څه وه ؟ | زده کوونکي خپله کړنه تر سره کوي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده ورکوي. | |

د دريم لوست د پوښتنو ځوابونه

- معجزه د عادت خلاف هغه څه ته ويل کيږي چې د پيغمبرانو په لاس ترسره کيږي او نور خلک ورڅخه عاجز وي.
- هو،پر معجزو ايمان لرل فرض دي.
- نه، بلکې معجزه په پيغمبرانو پورې ځانګړې وي.

**لوست: څلورم**

**سرلیک: د پیغمبرانو مشهورې معجزې**

مخ:

وخت: دري درسي ساعتونه

موخې:

زده کونکي باید:

**۱- د یو لړ پیغمبرانو معجزې وپیژني.**

**۲-او پردې پوه شي چې د صالح، موسی، عیسی، اومحمد علیهم الصلاة والسلام معجزې کومې وې؟**

**۳-د محمد صلی الله علیه وسلم د لویې معجزې لپاره دلیل بیان کړای شي.**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د رسول الله-صلی الله علیه وسلم- معجزې یا په متواتر ډول وي لکه قرآنکریم، چې منکر یي کافر بلل کیږي،او دیته معنوي معجزه هم وایي، بل کوم چې په متواتر ډول نه وي لکه د تیږې سلام اچول،یا له ګوتو څخه یي اوبه راوتل... چې منکر یي فاسق بلل کیږي. او دې ډول ته حسې معجزه هم ویل کیږي.**

**د رسول الله-صلی الله علیه وسلم- د یو لړ حسې معجزو بیلګې:**

**لومړی: د رسول الله-صلی الله علیه وسلم- دګوتو څخه د اوبو راوتل: ﴿عَنْ جَابِرٍ ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ، قَالَ عَطِشَ النَّاسُ يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ وَرَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم بَيْنَ يَدَيْهِ رَكْوَةٌ فَتَوَضَّأَ مِنْهَا ثُمَّ أَقْبَلَ النَّاسُ نَحْوَهُ ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم مَا لَكُمْ قَالُوا : يَا رَسُولَ اللهِ لَيْسَ عِنْدَنَا مَاءٌ نَتَوَضَّأُ بِهِ ، وَلاَ نَشْرَبُ إِلاَّ مَا فِي رَكْوَتِكَ قَالَ فَوَضَعَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم يَدَهُ فِي الرَّكْوَةِ فَجَعَلَ الْمَاءُ يَفُورُ مِنْ بَيْنِ أَصَابِعِهِ كَأَمْثَالِ الْعُيُونِ قَالَ فَشَرِبْنَا وَتَوَضَّأْنَا فَقُلْتُ لِجَابِرٍ كَمْ كُنْتُمْ يَوْمَئِذٍ قَالَ لَوْ كُنَّا مِئَةَ أَلْفٍ لَكَفَانَا كُنَّا خَمْسَ عَشْرَةَ مِئَةً.﴾ متفق علیه**

**ژباړه: د جابر -رضي الله عنه- څخه روایت دی وایي د حدیبیې په ورځ خلک تږي شول،او د رسول الله – صلی الله علیه وسلم- سره د اوبو یو لوښی-لوټه یا کوزه- وه، هغه ترې اودس وکړ،بیا خلکو د رسول الله- صلی الله علیه وسلم-اړخ ته راغلل، ویې فرمایل: څه خبره ده؟ اصحبو وویل: اوبه نشته چې اودس پرې وکړو، یا یي وڅکو، مګر هغه اوبه چې ستاسو په لوټه کې دي، نو رسول الله-صلی الله علیه وسلم- خپل لاس په لوټه کې کیخود، له ګوتو څخه یي اوبه روانې شوې لکه د چینې څخه چې اوبه راوځي، نو مونږ هغه وڅکلې او اودسونه مو پرې وکړل،-راوې وایي: ما جابر ته وویل: چې تاسو په دغه ورځ څو کسان وی؟ هغه وویل: که چیرته مونږ سل زره هم وای نو – اوبو- به کفایت کړی وای، مونږ پنځلس سوه وو.**

دویم: د رسول الله–صلى الله عليه وسلم– سره د ونې خبرې کول: «عَنْ مَعْنِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالَ : سَمِعْتُ أَبِي ، قَالَ : سَأَلْتُ مَسْرُوقًا مَنْ آذَنَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم بِالْجِنِّ لَيْلَةَ اسْتَمَعُوا الْقُرْآنَ فَقَالَ : حَدَّثَنِي أَبُوكَ ، يَعْنِي عَبْدَ اللهِ – أَنَّهُ آذَنَتْ بِهِمْ شَجَرَةٌ.» متفق عليه.

ژباړه: له معن بن عبد الرحمن څخه روايت دی وايي ما د خپل پلار څخه اوريدلي هغه وويل: ما له مسروق څخه پوښتنه وکړه چې نبي کريم –صلى الله عليه وسلم– ته د پيريانو په اړوند چا خبر ورکړ په هغه چې هغوي قرآنکريم ته غوږ نيولی و؟ ويې ويل: ماته ستا پلار حديث بيان کړی و–يعنی عبد الله– چې د هغوی خبر ورته يوې ونې ورکړی و.

دريم:په رسول الله–صلى الله عليه وسلم– د تيګې سلام اچول:

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– «إِنَّ بِمَكَّةَ حَجَرًا كَانَ يُسَلِّمُ عَلَىَّ لَيَالِىَ بُعِثْتُ إِنِّى لأَعْرِفُهُ الآنَ». رواه أحمد ومسلم.

ژباړه: د جابر بن سمره څخه روايت دی وايي چې رسول الله–صلى الله عليه وسلم– فرمايلي دي: يقينا په مکه کې يوه تيږه وه په هغو شپو کې چې زه مبعوث شوم پر ما يې سلام اچوو، زه هغه اوس هم پيژنم.

**د تدريس تګ لاره:** انفرادي، پوښتنه او ځواب، مطالعه.

**مرستندويه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
|---|---|---|
| سريزه۵ دقيقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظيمولو او حاضرۍ اخيستلو څخه وروسته مخکينی لوست ارزوي، د بيلګې په توګه پوښتنه کوي:<br>–څوک کولای شي ووايي د محمد–صلى الله عليه وسلم– لويه معجزه څه شی وه؟ | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وړاندېز۲۵ دقيقې | د نوي لوست عنوان (د پيغمبرانو مشهورې معجزې) له ليکلو څخه وروسته د زده‌کوونکو پام خپلو کتابونو ته را اړوي او په مناسب آواز سره يې ورته لولي.<br>وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست له مخه ولولي ښوونکی ټولګی کنټرولوي او غلطي يې اصلاح کوي. او په هر زده کوونکي يوه کرښه لولي.<br>وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو دپيغمبرانو مشهورې معجزې د کتاب له مخې په چوپه خوله سره ولولي.<br>تکرار: د چوپې خولې مطالعې او د ليکلو په لړکې د هر يوه ستونزې په نرمۍ سره حلوي ترڅو د مطالعې آرامه او مناسبه فضا وساتل شي. | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نيسي.<br><br>هغه زده‌کوونکي چې په کرنه ګمارل شوي په ښه ډول يې تر سره کوي. |

| | | |
|---|---|---|
| | **د درس خلاصه:**<br>پيغمبران دوه ډوله معجزې لري:<br>لومړی: معنوي معجزې.<br>دويم: حسي معجزې، چې له هغې جملې څخه د رسول الله –صلی الله علیه وسلم– له گوتو څخه د اوبو جاري کېدل، په هغه د تیږي سلام اچول او د ونې خبرې کول او داسې نور. | |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>**په راتلونکو سوالونو تر سره کيږي:**<br>۱- څوک کولای شي ووايي چې د صالح –علیه السلام معجزه څه وه؟<br>۲- څوک کولای شي ووايي چې د عیسی–علیه السلام– معجزه څه وه؟<br>۳- د محمد–صلی الله علیه وسلم– تر ټولو لویه معجزه څه وه؟ | زده کوونکي يادو پوښتنو ته ځوابونه ووايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده ورکوي. | |

**د څلورم لوست د پوښتنو ځوابونه**

- د صالح علیه السلام معجزه د ده په دعا سره د غره څخه د بلاربې اوښې را ایستل وو.
- د موسی علیه السلام معجزه لکېه په ښامار بدلیدل وو.
- د حضرت عیسی علیه السلام معجزه د هغه په دعا سره له مور څخه د پیدا شوي ړانده روغیدل وو.
- قرآن کریم د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ترټولو لویه معجزه ده چې د قیامت تر ورځې هیڅوک د دې کتاب په څیر بل کتاب نه شي جوړولای.

**لوست: پنځم**

**سرليک: سحر (کوډې)**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

موخې:

زده کوونکي بايد:

د سحر(کوډو) معنی وپېژني.

د سحر په اړه شرعې حکم باندې پوهه شي.

د سحر د حراموالې په اړه له قرآن او سنت څخه دليل بيان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د سحر په اړه د اسلام دريز**

زمونږ د اسلام دين د سحر په اړه قوی موقف نيولی دی،او سحر ته د تلو ټولو لاري يی تړلي دي،او د هغې زده کړه او ښوونه يې حرام ګرځولې ده،عمده وجه يې د انساني عقل سالم پاتي کيدل او له خرافاتو څخه بچ کيدل دي. اوس به د سحر لغوي او اصطلاحې تعريف وکړو او بيابه يې منفې اثرات هم ذکر کړو.

سحر په لغت کې: د يو شي اړول له خپل مخ څخه بل مخ ته.

او همدا رنګه د خپل حقيقت نه بل شی ته اړولو ته ويل کيږي.ليث-رحمه الله- وايي: سحر هغه عمل دی چې په هغې سره شيطانانو ته نزديوالی حاصليږي او بيا د هغوي نه مرسته غوښتل کيږي.ابن فارس وايي: چې سحر عبارت له هغې څخه دی چې باطل د حق په شکل کې ښکاره شي.يا سحر هغه شی دی چې د هغې مأخذ او بنياد باريک او دقيق وي.

عربان د ډير پټ شي په اړوند وايي چې: "أخفى من السحر" يعني له سحر څخه هم ډير پټ.

او ځينو عربانو د سترګو خوږوالی هم په سحر تعبير کړی دی؛ ځکه چې سترګې په پټ شکل خپل غشي د انسان زړه ته رسوي.

او بيان ته هم سحر ويل شوی دی، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: (إن من البيان لسحرا) ژباړه: ځيني بيانونه لکه سحر وي.

پيشلمې ته په عربې ژبه کې (سحور) ويل کيږي؛ ځکه چې د خلکو له سترګو پټ د شپې په اخيرې حصې کې خوړل کيږي.

او په اصطلاح کې: هغه علم او پوهې ته ويل کيږي چې د هغې په واسطه انسان کولای شې هغه شيان ترسره کړي چې ډير حيرانوونکې وي، او علت اوسبب يې پټ وي. حاشيه ابن عابدين ۱\۴۴

عبارت له ځيني دمونو او غوټو څخه دی چې د انسانانو په زړونو او بدنونو ناوړه اغېز کوي.

فخر الدين الرازي وايي: سحر د شرع په عرف کې په هر هغه شي پوری ځانګړی دی چې د هغې سبب پټ وي او د خپل حقيقت پرته په بل شکل کې پيش کړی شي.

ابن قدامة المقدسي وايي: سحر هغې غوټو او دمونو او خبرو ته ويل کيږي چې په هغې باندې خوله خوزيږي او يا ليکلی کيږي،او يا داسې يو عمل دی چې د مسحور (جادو کړی شوي) شخص په بدن يا په زړه يا په عقل باندې تاثير وکړي.

آیا سحر تاثیر لري؟

هو،سحر تاثیر لري، ددې په وجه یو څوک قتلیږي،یامریضیږي،د خپلي میرمنې سره د جماع کولو څخه محرومیږي،او خاوند او میرمنې په منځ کې جدا والی هم راولي، او د یو وګړي له بل وګړي سره نفرت په زړه کې اچوي ،او هم محبت پیدا کوي. او همدا ډول په رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو یهودې په واسطه هم سحر شوی و چې یو څه وخت پرې د سحر تاثیر لیدل کیده، تر څو چې د معوذتین (سوره الفلق او الناس) سورتونه نازل شول، هغه یې ولوستل او له سحر څخه خلاص شو.

آیا سحر حقیقت لري که نه؟

امام خطابي –رحمه الله– وایي: هغه خلق چې هغوي ته اصحاب الطبائع ویل کیږي د سحر نه انکار کوي، او ددې حقیقت یې باطل کړی دی،او امام قرطبي –رحمه الله– وایي:عام معتزلو دا مذهب دی چې سحر څه حقیقت نه لري او وایي چې دا صرف یو خیال او وهم دی، او له حقیقت پرته د یو شي ترسره کول دي، او دا دلاس د صفایي او مداریتوب یو ډول دی، او معتزلو په دې ایت استدلال کړی دی چې الله–جل جلاله– فرمایي: ﴿يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَى﴾ سوره طه، (٦٦) ژباړه: موسی – علیه السلام– ته په خیال کې داسې راغله چې جادوګرانو کومې همساګاني او پړي غورځولي دي هغه منډې وهي.

ددوي استدلال: الله –جل جلاله–داسې نه دي ویلي چې په حقیقت کې دغه شیانو منډې وهلي بلکې ویلي دي چې[یخیل الیهم] یعني موسی–علیه السلم– ته په خیال کې داسې راغله. او دویم استدلال دوي په دې کوي چې: ﴿سَحَرُوا أَعْيُنَ النَّاسِ﴾ سوره الأعراف (١١٦) ژباړه: د خلکو په سترګو باندې یې جادو وکړو.

ددې په جواب کې امام قرطبي–رحمه الله– وایی: چې په نوموړو آیتونو کې د معتزلو لپاره هیڅ دلیل نشته، ځکه چې مونږ ددې نه انکار نه کوو چې تخییل(خیال) وغیره د سحر د جملې څخه نه وي، لاکن ددې نه بغیر د نورو عقلي او نقلي دلیلونو نه هم د جادو موجودیت ثابتیږي، د مثال په ډول الله –جل جلاله– فرمایي: ﴿يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ﴾ سوره البقره (١٠٢) ژباړه:دوي به خلکو ته سحر خودلو.نو که چې د سحر حقیقت نه وی نو بیا به د سحر تعلیم حاصلول هم ممکن نه و، او نه به الله تعالی دده د تعلیم په اړه فرمایلي وی، بلکه نوموړی ایت پردې دلالت کوي چې سحر حقیقت لري او یو ثابت شی دی.

د سحر ناوړه اثرات:

سحر په افرادو او ټولنې ډیري ناوړه اغیزي لري، دبیلګې په ډول انسان ددې په واسطه کفر ته رسیږي او د ښځې او میړه په منځ کې جدا والی راولي،او مسلمانانو ته د ضرر سبب کیږي، لکه په قرآن کریم کې الله –جل جلا له– فرمایي: ﴿وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّى يَقُولَا إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهِ وَمَا هُمْ بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾ د سورت البقرة (١٠٢) آیت

ژباړه: او نه ښوولو دواړو هیڅ یو ته تر څو ویل به دواړو، خبره داده چې مونږ ازمیښت یو، نو کفر مه خپله وه، نو زده کولو به هغوی له دې دواړو څخه هغه څه چې جلا کول به هغوی په هغه سره په منځ د سړي او ښځه کې یې او نه وو هغوی ضرر رسوونکي په جادو او سحر هیڅ یو ته مګرپه حکم د الله،او زده کولو هغوی هغه چې تاوان یې وررساو او ګټور نه وهغوی ته، او په تحقیق پوه شوي وو هغوی خامخا هغه چاچې اخستې دی جادو نشته هغه لره په اخرت کې له برخې، او خامخا ډیر بد دی هغه څه چې خرڅ کړي په هغه سره ځانونه خپل،کاشکې دوی پوهیدلای.

د سحرعلاج او له منځه وړل:

د سحر له منځه وړل له ډېرو لارو نه کیږي، چې ځیني مهمي یې په لاندې ډول دي:

لومړی: د کوډو راویستل.

دویم: په قرآني آیتونو سره د دم له لارې چې د هغې له جملې نه ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ... ﴾ مکمل سورت، او ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ...﴾ مکمل سورت او آیت کرسي، ﴿قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ ...﴾ پوره سورت،او(﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ...﴾ پوره سورت، او سورت الأعراف له ۱۱۷ ایت څخه تر ۱۲۲ ایت پورې، او سورت یونس: ۷۹-۸۲ ، او سورت طه: ۶۵-۶۹ ایتونه دي.

دریم: له روا او جایزو دواګانو(دارو) له لارې، لکه سهار وختي د عجوه خرما خوړل.

څلورم: د متضرره شوی ځای د حجامت (د وینو وستو) له لارې.

پنځم: د بېرې د پاڼو میده کول او په اوبو کې ګډول او له هغې څخه درې ګوټه کول او بیا پرې غسل کولو له لارې.

**د تدریس تګ لاره:** پوښتنه او ځواب، انفرادي، مطالعه

**مرستندویه توکي:** کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر او داسې نور.

| وخت | د ښوونکي کړنې | د زده کوونکو کړنې |
| --- | --- | --- |
| سریزه۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو او حاضرۍ اخیستلو څخه وروسته مخکینی لوست ارزوي، د بیلګې په توګه پوښتنه کوي: | زده کوونکي پوښتنو ته ځوابونه ورکوي. |
| د لوست وراندیز۲۵ دقیقې | -څوک کولای شي د موسی او عیسی -علیهما السلام- معجزې ووایي؟ د نوي لوست د عنوان ( سحر (کوډې) ) له لیکلو څخه وروسته د زده کوونکو پام خپلو کتابونو ته اړوي. او لوست په مناسب أواز سره لولي. وروسته له څو زده کوونکو څخه غواړي تر څو هر یو په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راشي او لوست د کتاب له مخې ولولي او خپله ټولګی کنترولوي او د هغوی غلطۍ اصلاح کوي. کله چې هر زده کوونکی یوه کرښه لولي. وروسته زده کوونکو ته ښوونه کوي ترڅو د سحر لوست په چوپه خوله د کتاب له مخې ولولي. | زده کوونکي لوست ته ښه غوږ نیسي. هغه زده کوونکي چې په فعالیت ګمارل شوي په ښه شکل یې تر سره کوي. زده کوونکي لوست په چوپه خوله سره مطالعه کوي. |
| ۱۰ دقیقې | **ارزونه:**<br>**په راتلونکو سوالونو تر سره کیږي:**<br>۱- څوک کولای شي ووایي چې سحر د چا کار دی؟<br>۲- آیا د کوډو له لارې روزي ګټل روا کار دی؟<br>۳- څوک چې ساحر ته لاړ شي او د هغه کړنې رینښتیا وګڼي حکم یې څه دی؟ | زده‌کوونکي یادو پوښتنو ته ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته د درسي کتاب له مخې کورنۍ دنده ورکوي. | |

**د پنځم لوست د پوښتنو ځوابونه**

- هوکې، کوډې کول ډېره لويه ګناه ده.
- کوډې د ساحر(کوډګر) کار دی.
- نه، د کوډو له لارې روزي ګټل حرام دي.
- هوکې، د ځينو آياتونو او سورتونو په لوستلو سره مونږ د کوډو له ضرر څخه په امن کيږو، د بيلګې په ډول د معوذتين سورتونه (سورت الفلق او سورت الناس) سورتونه.

**لوست: شپږم**

**سرلیک: د فال کتل**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

موخې:

زده کوونکي باید:

د فال کتلو حکم وپیژني.

دا درک کړي چې فال کتل لويه ګناه ده.

نورو ته د فال نه د منعه کیدو دلیلونه ووېلای شي.

**د ځینو کلمو معناګاني:**

عراف: هغه چاته ویل کیږي چې د ځینو مقدمو له لارې د پټو شیانو په اړوند خبري کوي، لکه د پټ شوی شي او یا دهغې د ورکېدو ځای په اړوند خبر ورکول.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

«عَنْ صَفِيَّةَ، عَنْ بَعْضِ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ أَتَى عَرَّافًا فَسَأَلَهُ عَنْ شَيْءٍ، لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلَاةٌ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً»رواه مسلم د حدیث شمیره(۲۲۳۰)

ژباړه: څوک چې فال کتونکي ته راشي او د يو څه په اړوند ترېنه پوښتنه وکړي، تر څلویښتو شپو پوري به يي لمونځ قبول نشي.

حقیقت دادی چې فال کتل په شریعت کې هیڅ بنسټ او اساس نه لري، بلکې یواځې خیل او ګومان دی چې کله کله د انسان زړه کې پیدا کیږي، او هیڅ تاثیر نه لري، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: ﴿لَا عَدْوَى وَلَا طِيَرَةَ وَلَا صَفَرَ وَلَا هَامَةَ﴾ متفق علیه. ژباړه: د مریضتیا یو بل ته تلل، فال کتل، د سر مسخه(یعني چې د هام مرغه په واسطه چاته څه ضرر رسیدل، او یا دا چې د سرې هډوکي مړه کیږي او روح يي په سر بدلیږي او الوزي) او د صفر میاشت(د جاهلې دور کې خلکو ودونه نه کول؛ځکه بیا د ښځې او خاوند په منځ کې مشکل پیدا کیده) دا ټول رسول الله صلی الله علیه وسلم رد کړل، او ويي ویل چې دا هیڅ حقیقت نه لري، د صفر میاشت د نورو میشتو په څیر هیڅ تاثیر نه لري. همدا ډول نوري ورځې او شپې هیڅ توپیر سره نه لري، په جاهلې دور کې خلکو د چهارشنبې په ورځ بدبیني کوله، او دشوال په میاشت کې به يي ودونه نه کول، عایشه رضي الله عنها ددې په هلکه فرمایي چې (رسول الله له ماسره د شوال په میاشت کې واده وکړ، او له ما څخه څوک خوشبخت شته؟).

**د شپږم لوست د پوښتنو ځوابونه**

**آیا د فال کتل حرام دي؟**

**ځواب: هو، د فال کتل حرام دي،او لویه گناه ده.**

**د فال کتونکي ته ورتلل روا دي یا ناروا؟**

**ځواب: د فال کتونکي ته ورتلل ناروا دي.**

**رسول الله –صلی الله علیه وسلم– د فال کتونکي په اړه څه ویلي دي؟**

**ځواب: رسول الله –صلی الله علیه وسلم– د فال کتونکي په اړه ویلي دي: «مَنْ أَتَى سَاحِرًا أَوْ كَاهِنًا أَوْ عَرَّافًا، فَصَدَّقَهُ بِمَا يَقُولُ، فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلَى مُحَمَّدٍ عَلَيْهِ الصلاة والسَّلَامُ».**

## لوست: اووم

## سرلیک: لوی گناهونه

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

موخې:

زده کوونکي باید:

د لوی گناه تعریف وپیژني،چې له توبې پرته په بل شي نه بښل کیږي.

دا هم وپیژني چې د وړو گناهونو تکرار څخه لویه گناه جوړیږي.

د لوی گناه ځیني ډولونه وپیژني لکه شرک،سحر،قتل،سود او داسې نور.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د امام الذهبي څخه د لوی گناهونو دوه تعریفونه نقل شوي دي، لومړی: هغه گناه چې الله تعالی ترینه په قرآن کریم کې منعه کړې وي، او یا په سنت او د سلفو صالحینو څخه د هغې منعه راغلي وي.کتاب الکبائر د امام ذهبي لیکنه ۱\۷

دویم: هغه گناه چې دنیوي حد یې ذکر شوی وي لکه زنا، قتل او غلاکول، او یا اخروي عذاب، غضب او تهدید ورته ذکر شوی وي، او یا یې کوونکی د نبي–صلی الله علیه وسلم– په ژبه لعنتي گرزیدلی وي.

لوی گناهونه په خپل منځ کې هم د درجې له لحاظه متفاوت دي، لکه د الله سره شریک نیول له لویو گناهونو څخه شمیرل شوی دی، لاکن د هغه نیونکی په دوزخ کې همېشه وي، او هرگز ورته ښښنه نه کیږي.

په متن کې د یادو شوو گناهونو په اړوند یو صحیح روایت راوړو او بیایي ژباړو:

«عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «اجْتَنِبُوا السَّبْعَ الْمُوبِقَاتِ» قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ، وَمَا هُنَّ؟ قَالَ: «الشِّرْكُ بِاللهِ، وَالسِّحْرُ، وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ، وَأَكْلُ مَالِ الْيَتِيمِ وَأَكْلُ الرِّبَا، وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ، وَقَذْفُ الْمُحْصِنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ»

رواه مسلم د حدیث شمېره (۱۴۵)

ژباړه: رسول الله–صلی الله علیه وسلم– وفرمایل: له اوو هلاکوونکو څخه ځانونه وژغورئ، وویل شول: ای د الله رسوله، هغه څه دي؟ ویې فرمایل: د الله سره شریک نیول،سحر(جادو یا کوډې)،په ناحقه د مسلمان وژل،د یتیم مال خوړل،د سود خوړل،له کافرانو څخه د جنگ په وخت کې تیخته کول،او په پاکدامنو مسلمانو ښځو پوري تهمت لگول.

ځینې پوهانو ویلي دي چې لوی گناهونه اووه دي او دلیل هم دا لومړی حدیث ذکر کوي.

او عبد الله بن عباس–رضي الله عنهما– د لویو گناهونو شمیر اویاو ته رسیدلی سم گڼي.

ذهبي هم دې وینا ته مایل دی، او وایي: د حدیث هدف په اوو کې انحصار نه دی.

**د اووم لوست د پوښتنو ځوابونه**

- هغه گناهونو ته ویل کیږي چې له توبې پرته نه ښښل کېږي.
- که څوک وړه گناه له یو ځل څخه زیاته تکرار کړي نو لویه گناه ترې جوړیږي.
- په درسي کتاب کې شپږ یاد شوي دي، ولي په صحیح حدیث کې اووه یاد شوي دي، او عبد الله بن عباس–رضي الله عنهما– د لویو گناهونو شمیر اویاو ته رسیدلی سم گڼي.

**لوست: اتم**

**سرلیک: د جمعې لمونځ**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

د لوست موخې:

زده کوونکي باید:

١- پوه شي چې د جمعې لمونځ دوه رکعته او د ماسپښين د لمانځه پرځای اداء کیږي.

٢- په دې باور ولري چې د جمعې لمونځ په عاقل، بالغ او مقیم مسلمان فرض دی.

٣- د جمعې د لمانځه طریقه په عملي بڼه بل چاته بیان کړی شي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د جمعې د لمانځه اهمیت:د جمعې د لمانځه تاکید په قرآن کریم کې هم راغلی دی ﴿یا أیها الذین آمنوا إذا نودي للصلوة من یوم الجمعة فاسعوا إلی ذکر الله وذروا البیع ذلکم خیر لکم إن کنتم تعلمون﴾ ای مومنانو! کله چې د جمعې په ورځ لمانځه ته بلنه وشي، نو د الله د ذکر په لور وځغلئ، خرڅول او اخیستل پریږدئ، که پوهیږئ نو دا ستاسې ګټه ده.**

**د جمعې د لمانځه مسئلې او حکمونه:**

**(١) د جمعې لمونځ نه صحیح کیږي مګر په جامع ښار کې جامع ښار هغه ځای ته ویل کیږي چې پکې امیر اوقاضي موجود وي، احکام نافذ وي اوحدود قایموي. او د جمعې لمونځ به سلطان قایموي یا هغه څوک چې سلطان ورته امر کړی وي.**

**(٢) د جمعې له شرطونو څخه وخت دی چې لمونځ د لماسپښین پروخت صحیح کیږي.**

**(٣)بل د جمعې له شرطونو څخه خطبه ده چې مخکې له لمانځه څخه به امام دوه خطبې ورکوي چې د هغو ترمنځ به په کیناستو سره جلا والی راولي اوخطبه به په ولاړه اوطهارت ورکوي ،که یې خطبه په ناسته او بې اودسۍ ورکړه جوازلري خومکروه ده.**

**(۴)اوهمدارنګه د جمعې له شرطونو څخه جماعت دی . لږ کسان یې د امام ابوحنیفه او محمد رحمة الله علیهما په نزد له امام څخه پرته درې تنه دي.**

**او امام به په دواړو رکعتونو کې په لوړ اواز قرائت کوي**

**(۵) د جمعې لمونځ په مسافر ، ښځه ، ناروغ، مریې او ړانده باندې ندی واجب خوکه ورته حاضر شول او د جمعې لمونځ یې اداکړ په دې صورت کې د دوی له غاړې د لماسپښین لمونځ ساقطیږي.**

**(٦) مریي ، مسافر ، ناروغ ته روا ده چې د جمعې لمانځه امامت وکړي.**

(۷)کله چې امام د جمعې په ورځ منبرته وخیژي خلک دې لمونځ او خبرې پرېږدي تر هغې چې امام له خطبې څخه فارغ شي.

(۸) کله چې مؤذن د جمعې په ورځ لومړی آذان وکړي خلک دې اخیستل اوخرڅول پرېږ دي او د جمعې د لمانځه خواته دې روان شي .

د اتم لوست د پوښتنو ځوابونه

د جمعې لمونځ فرض او منکر يې کافر دی.

د جمعې لمونځ دوه رکعته په جماعت سره اداء کیږي.

د جمعې لمونځ په عاقل، بالغ، مقیم ،آزاد،روغ ،اونر مسلمان باندې فرض دی.

امام د جمعې لمانځه لپاره دوه خطبې وايي.

**لوست: نهم**

**سرلیک:د جنازې لمونځ(۱)**

مخ:

وخت: دری درسي ساعتونه

موخې:

زده کوونکي باید:

۱- پوه شي چې د جنازې لمونځ فرض کفايي اوپه جماعت سره اداء کیږي

۲- دا درک کړي چې د جنازې په لمانځه کې څلور تکبیرونه ویل فرض دي .

۳- د جنازې د لمانځه طریقه په عملي بڼه بل چاته بیان کړی شي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د جنازې د لمانځه اړوند احکام**

مړي ته له غسل او کفن ورکولوڅخه وروسته دې د جنازې لمونځ ورباندې وکړی شي، د امامت لپاره تر ټولو حقداره کس سلطان دی که حاضر نشو، نو د کلي د امام مخته کول مستحب دي ،بیا ولي، اوکه چیرې په هغه (مړي) باندې له ولي اوسلطان څخه پرته بل څوک لمونځ وکړي، ولي یې را ګرځولای شي،خو که ولي ورباندې لمونځ اداء کړ بیا بل چا ته روا نه ده چې لمونځ پرې وکړي.

د لمونځ کوونکي لپاره د جنازې د لمانځه شرطونه

۱-پاک والی

۲-عورت پټول

۳-قبلې ته دریدل

۴-نیت

د جنازې د لمانځه اړوند مسایل

مړی عبارت له هغه چا څخه دی چې ژوندی وي او مړ شي که چیرته مړ دنیا ته را شي مړی نه دی او د جنازې لمونځ پرې نه ادا کیږي .

که چیرته بغیر له جنازې کولو دفن شي تر دریو ورځو شپو د ده پر قبر د جنازې لمونځ ادا کیږي.

د جنازې په لمانځه کې دری شیان سنت دي:

۱- د الله ثنا.

۲-درود پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم.

۳- د مړي لپاره دعا.

**د کفن احکام**

د نر لپاره درې ټوټې کفن کول سنت دي.

۱– لفافه .

۲– پرتوګ .

۳– قمیص.

د ښځې لپاره پنځه ټوټې دي درې ذکر شوې او دوې عبارت دي له:

۱ــ سربند ،۲ــ سینه بند.

د کفن شرح د لاندې نقشې په برابر ده

| نوم | اوږد والی | عرض | لازمه اندازه |
|---|---|---|---|
| لفافه | دوه متره | یومتر او لس سانتي | له سره تر پښو او اضافه اندازه |
| پرتوګ | دوه متره | یومتر او لس سانتي | له سره تر پښو بې له اضافه والي |
| قمیص | دوه متره | یومتر او لس سانتي | له اوږې تر نیمایي د پنډۍ |
| سربند یاچادر | یو متر | تقریبا دیرش سانتي | د سر ویښته به په دوو برخو ویشي یوه برخه به دسینې په ښي طرف او بله برخه به د سینې په چپ طرف واچوي . |
| سینه بند | یونیم متر | تقریبا اوه سانتي | له تخرګ لاندې تر نا مه پورې . |

**د نهم لوست د پوښتنو ځوابونه**

د جنازې لمونځ فرض کفایي دی.

هو د جنازې لمونځ په جماعت سره اداء کیږي.

نه د جنازې په لمانځه کې رکوع او سجده نشته.

د جنازې په لمانځه کې څلور تکبیرونه ویل کیږي.

هو د جنازې د لمانځه تکبیرونه فرض دي.

**لوست: لسم**

**سرليک: د جنازې لمونځ (۲)**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

**د لوست موخې:**

زده کوونکي باید:

۱- د جنازې د لمانځه ادا کولو طریقه و پېژني.

۲- د جنازې د لمانځه ادا کولو سره علاقه پیدا کړي.

۳- د جنازې د لمانځه ادا کولو طریقه نوروته بیان کړی شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د جنازې د لمانځه مسنونه طریقه**

د جنازې د لمانځه د اداء کولو طریقه داده چې جنازه د مخې ته کېښ دي او امام دې د مړي د سینې برابر ودرېږي، مقتدیان دې د امام شاته صفونه جوړ کړي او هر یو دې دا نیت وکړي چې د الله تعالی دعبادت په توګه د جنازې د لمانځه فریضه اداء کوم ثواب یې د مړي لپاره اقتدا مې وکړه په دې حاضر امام پسې بیا به تکبیر تحریمه «**الله اکبر**» وایي اوله تکبیر سره به لاسونه هم پورته کړي او بیا به لاسونه بسته کړي او «**سبحانک اللهم**» به تر اخره ووایي، په دویم تکبیر ویلو سره دې لاسونه نه پورته کوي اوپه نبي کریم صلی الله علیه وسلم به درود ووایي،بیا به دریم تکبیر ووایي اولاسونه به نه پورته کوي ،که چیرته مړی بالغ نر یا ښځه وي دا دعا به وایي «اللهم اغفر لحینا ومیتنا، وشاهدنا وغائبنا، وصغیرنا وکبیرنا، وذکرنا وأُنثانا، اللهم من أحییته منا فأحیه على الإسلام، ومن توفیته منا فتوفه على الإیمان»

ژباړه:ای الله! زموږ ژوندي، مړي، حاضر، غایب، کوچني، لوی، نر او ښځې و ښښه، یا الله له موږ څخه چې چاته ژوند ورکوې ، په اسلام ژوند ورکړه، او له موږ څخه چې له چا روح اخلې، په ایمان سره یې واخله .

که مړی هلک وي دا دعا به وایي: ﴿اللهم اجعله لنا فرطا واجعله لنا أجرا و ذخرا و اجعله لنا شافعا و مشفعا﴾

ژباړه :ای الله! د غه مړی (هلک) زموږ د ثواب سبب و ګرځوه او زموږ لپا ره یې د آخرت پانګه وګرځوه، او زموږ لپاره یې شفیع او شفاعت یې قبول وګرځوه .

که چیرته وړه نجلۍ وي د اجعله په ځای د (اجعلها)او د شا فعا په ځای دې (شافعة) او د مشفعا په ځای د (مشفعة)و وايي وروسته به څلورم تکبیر وايي،لاسونه به نه پورته کوي اودوو طرفونو ته به سلام ګرځوي،اول ښي لور او بیا کیڼ لورته.

**د لسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

د جنازې په لمانځه کې له لومړي تکبیر وروسته سبحانک اللهم.......ویل کیږي.

په دویم تکبیر کې امام او مقتدیان درود اوپه دریم کې دعاء وايي.

په څلورم تکبیر کې امام او مقتدیان دواړو خواوو ته سلام ګرځوي.

**لوست: یوولسم**

**سرلیک: د جنازې د لمانځه دعاګانې**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

**د لوست موخې:**

زده کوونکي باید:

١– په دې پوه شي چې د جنازې په لمانځه کې کومې دعا ګانې ویل کیږي.

٢– د دعاګانو په معنی او مفهوم پوهیدلو ته لیواله شي.

٣– دجنازې د لمانځه دعا ګانې نوروته بیان کړی شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د جنازې د لمانځه احکام:**

د جنازې لمونځ اداکول پر مسلمانانو فرض کفایي دي.

نو که یو څو تنو له مسلمانانو څخه پر مړي د جنازې لمونځ وکړ د نورو له ذمې څخه ساقط دی.

د جنازې لمونځ پر هغو چا واجب دی چې نور فرض لمونځونه پرې واجب دي خو د مړي په مرګ به خبر وي.

د جنازې لمونځ څلور تکبیرونه دی، اوهر تکبیر دیو رکعت برابر دی.

دریدل، د جنازې لمونځ غیر له عذر نه په ناسته نه صحیح کیږي.

د جنازې د لمانځه شرطونه: د جنازې لمونځ هغه وخت پر مړي روا کیږي چې لاندیني شرطونه پکې موجود وي

مړ شوی کس باید مسلمان وي ، نو په کافر باندې د جنازې لمونځ اداء کول جواز نلري.

مړ شوی کس باید له حقیقي او حکمي نجاست څخه پاک وي،(غسل ور کړل شوی وي)

جنازه باید د لمونځ کوونکو پرمخ کې ایښودل شوې وي.

جنازه باید پر ځمکه ایښې وي،که په کټ یا تخته کې وي هغه کټ یا تخته باید پر ځمکه ایښې وي دا په هغه صورت کې چې کوم شرعي عذر نه وي.

د جنازې د لمانځه سنتونه:

امام به د مړي د سینې په برابر ودریږي که مړی نر وي یا ښځه.

وروسته له لومړي تکبیر څخه به( ثناء) وایي.

وروسته له دویم تکبیر څخه به پر رسول کریم صلی الله علیه وسلم درود وایي.

وروسته له دریم تکبیر څخه به د مړي په حق کې دعاء وکړي.

وروسته له څلورم تکبیر څخه سلام ګر ځول دي.

**د مړي د ښخولو احکام**

- د مړي خښول د غسل کولو او پر هغې د لمانځه کولو په څير فرض کفايي دي .
- له لمانځه اداکولو وروسته فورا د هديرې په لور د مړي وړل مستحب دي
- له جنازې سره تلونکي کسان بايد په ځمکه له جنازې ايښودلو څخه مخکې کښېني نه ني. خوکه عذرولري بيا کيناستل مکروه نه دي.

له جنازې وروسته تلل مستحب دي که څوک له جنازې مخکې لاړ شي هم باک نه لري بلکي ټول خلک بايد له جنازې مخکې لاړ نه شي.

- د جنازې سره دتللو په حالت کې په لوړ اواز ذکر کول او يا بل شی ويل مکروه دي.
- قبر دې د نيم قد په اندازه وکيندل شي اوله قد نه دې زيات نه شي.
- کله چې قبر تيار شي مړی بايد د قبلې له لوري قبر ته ور داخل کړي د نفرو طاق يا جفت والی سنت نه دی او د مړي د ايښودلو په حالت کې دې دا کلمې ووايي ﴿بسم الله وعلى ملة رسول الله﴾.
- په لحد کې دمړي مخ د قبلې لوري ته کول سنت دي او د کفن غوټې د هم خلاصې شي.
- لحد د په خامو خښتو يا ختو سره بند شي نه په لرگيو يا پخو خښتو سره مگر دضرورت په وخت کې ستونزه نلري.
- په قبر کې د ښځې د ايښودلو په وخت کې د قبر پټوالی مستحب دی.
- له خښولو وروسته د قبر په سر يوه اندازه ودريدل او مړي ته دعا کول مستحب دي.
- د قبر د خاورو په سر د اوبو اچول مستحب دي.
- هيڅ مړی بايد په کور يا مخصوصه ودانۍ کې خښ نه شي ځکه دا خاصه د انبياء عليهم السلام وه .
- د قبر مربع کول مکروه دي بلکه مستحب دا ده چې قبر د اوښ د بوکام په څير د شلو سانتيو په اندازه لوړ شي او له دې نه ډير لوړ والی مکروه تحريمي دی .
- له خښولو وروسته د زينت لپاره پر قبر د ودانۍ جوړول حرام دي او د حفاظت لپاره مکروه دي بلکه په همغه حال چې مخکې و بايد پريښودل شي.

**د يوولسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

ای الله !زمونږ ژوندي اومړي وبښې.

ای الله! زمونږ څخه چې چاته ژوند ورکوې په اسلام ژوند ورکړې.

ای الله ! دغه مړی زمونږ دخوښۍ اوثواب سبب وگرځوه.

اللهم اغفر لحينا وميتنا، وشاهدنا وغائبنا، وصغيرنا وكبيرنا، وذكرنا وأُنثانا، اللهم من أحييته منا فأحيه على الإسلام، ومن توفيته منا فتوفه على الإيمان

**لوست: دوولسم**

**سرلیک: د اختر لمونځ**

مخ:

وخت: دری درسي ساعتونه

د لوست موخې:

زده کونکي باید:

۱–یوه شي چې د اختر لمونځ د کال په اوږدو کې صرف دوه ځله پرمسلمانانو راځي.

۲–د اخترونو د لمنځونو د ادا کولو سره علاقه پیدا کړي.

۳–د اخترونو د لمانځه په اړه نورو ته معلومات ورکړی شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**اختر(عید)**

عید له عود څخه اخیستل شوی دی ،چې را گرځیدلو ته ویل کیږي اوهغه ته عید ځکه ویل کیږي چې هر کال راگرځي.

د اخترونو لمونځ په هر هغه چا واجب دی په چا چې د جمعې لمونځ واجب وي.

د شوال دمیاشتې اول تاریخ ته عید فطر او د ذی لحجې د میاشتې لسم تاریخ ته عید اضحی ویل کیږي، په اسلام کې دا دوې د عید اوخوشالۍ ورځې دي او د شکرانې په توگه دوه رکعته لمونځ په دې دوو ورځو کې واجب دی.

**د اخترونو د لمانځه د صحت شرطونه**

البته هغه شرطونه چې د جمعې د لمانځه لپاره لازم دي د اختر د لمانځه لپاره هم لازم دي ، تنها خطبه په اخترونو کې واجب نه ده او مخکې له لمانځه څخه نه ویل کیږي ، بلکې له لمانځه څخه وروسته د هغې ویل سنت دي .

**د اخترونو اداب**

- مسواک وهل .
- غسل کول .
- پاک کالي اغوستل.
- د عطرو استعمالول.
- په کوچني اختر کې عید گاه ته له تللو مخکې او په لوی اختر کې دعید له لمانځه اداکولو وروسته د یو څه خوړل.
- په کوچني اختر کې د فطر صدقه واجب ده او د لمانځه څخه مخکې دې هغې اداکول مستحب دي.
- په ورین تندي د خوشالی اظهارول.
- عید گاه ته په یوه لاره تلل او په بله لاره بیرته راتلل.
- د عید گاه په لوري په پښو سره تلل، او په کوچني اختر کې د لارې په اوږدو کې په ورو ورو د تکبیرونو ویل ، او په لوی اختر کې په لوړ اواز سره د تکبیرونو ویل، او عید گاه ته د رسیدلو پر وخت د تکبیر ویل پریښودل.
- د اختر لمونځ په خپل وخت اداشي ، د اختر د لمانځه اداکولو وخت د لمر له راختلو (*دیوې نیزې په اندازه) شروع کیږي او تر زوال مخکې پای ته رسیږي.*

**د دوولسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

کوچنی اختر د شوال په میاشت کې وي.

په لوی اختر کې مسلمانان قرباني کوي.

د اختر لمونځ دوه رکعته دی.

د اختر لمونځ واجب دی.

**لوست: دیارلسم**

**سرلیک: د اختر د لمانځه طریقه**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

د لوست موخې:

زده کوونکي باید:

١- پوه شي چې د اخترلمونځ دوه رکعته دی.

٢- د اختر د لمانځه له ادا کولو سره علاقمندي وښیي.

٣- د اختر د لمانځه طریقه نورو ته بیان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

د اختر د لمانځه اداکولو طریقه داده چې لومړی داسې نیت وکړي، نیت مې وکړ دوه رکعته د کوچني اختر واجب لمونځ سره له واړه تکبیرونو اداکوم ، اقتدا مې وکړه په دې حاضر امام پسې ،وروسته له نیت څخه به الله اکبر وواېي لاسونه به د غوږونو تر نرمیو پورته کړي، وروسته به خپل لاسونه سره بسته کړي او ﴿**سبحانک اللهم**﴾ به وواېي، بیا به د امام سره درې تکبیره وواېي اوپه هر تکبیر کې لاسونه د غوږو ترنرمیو پورې پورته کړي،وروسته به لاسونه سره بسته کړي بیا به په پټه خوله ودریږي، امام به اعوذ بالله من الشیطان الرجیم او بسم الله الرحمن الرحیم په پټه وواېي، الحمد لله اوسورت به په جهر سره وواېي، بیا به مقتدیان له امام سره د نورو لمونځونو په شان رکوع اوسجده کوي، نو کله چې امام دویم رکعت ته ولاړ شي نو پټه خوله به ودریږو، امام به بسم الله په کراره وواېي، الحمد لله اویو بل سورت به په جهر وواېي، کله چې امام له قرائت څخه فارغ شي نو درې تکبیرونه به وواېي، په هر تکبیرسره به لاسونه پورته کوي او په څلورم تکبیر سره به رکوع ته لاړشي .

د لمانځه د اول رکعت په پیل کې مخکې له الحمد لله څخه د ﴿**اعوذبالله من الشیطان الرجیم**﴾ او ﴿**بسم الله الرحمن الرحیم**﴾ ویل او د نورو رکعتونو په پیل کې مخکې له الحمد لله څخه د ﴿**بسم الله الرحمن الرحیم**﴾ ویل سنت دي .

د عید د لمانځه اداکولو وروسته به امام پر منبر ودریږي او دوې خطبې به وواېي د جمعې د خطبې په څیر به د دوو خطبو په مینځ کې د دریو تسبیحاتو په اندازه کیني.

او د لوی اختر لمونځ هم د کوچني اختر په شان اداکیږي.

**د دیارلسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

د اختر لمونځ دوه رکعته دی.

په اختر لمانځه کې شپږ اضافي تکبیرونه ویل کیږي.

لومړي درې تکبیرونه له ثناء( سبحانک اللهم.... ) څخه وروسته ویل کیږي.

په دویم رکعت کې درې تکبیرونه له رکوع څخه مخکې ویل کیږي.

**لوست: څوارلسم**

**سرلیک: د تلاوت سجده**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

د لوست موخې:

زده کوونکي باید:

۱- د تلاوت سجده و پیژني.

۲- د تلاوت له سجدې کولو سره علاقه مند شي.

۳- د تلاوت سجده په خپله ترسره اونوروته یې بیان کړي .

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د تلاوت د سجدې تعریف:** د تلاوت سجده له هغه سجدې څخه عبارت ده چې د سجدې د ایت یا آیتونو په تلاوت او یا اوریدلو سره واجبیږي .

**د تلاوت د سجدې موجبات:**

د تلاوت سجده په دریو ځایونو کې واجبیږي

- د سجدې د آیت لوستل پخپله یې واوري یایې وانه وري.
- د سجدې آیت اوریدل که د هغه د اوریدلو نیت یې کړی وي او که نه یې وي کړئ.
- په داسې امام پسې اقتداء وکړي چې هغه دسجدې آیت تلاوت کړئ وي، مقتدي که دسجدې آیت اوریدلی وي او که نه.

د تلاوت سجده په لاندې ځایونو کې نه واجبیږي:

- که ښځه دحیض اونفاس په حالت کې وي.
- که مقتدي د تلاوت سجده و لولي په امام باندې نه واجبیږي.
- په لیوني، ویده، کوچني او کافر باندې د تلاوت سجده نه واجبیږي.
- په هغه چا سجده نه واجبیږي چې د سجدې آیت له ټیپ یا ریکارډر څخه واوري.

**اړوندې مسئلې:**

- که امام او مقتديان له داسې چا څخه دسجدې آیت واوري چې هغه په لمانځه کې ورسره ګډون نه لري، نو امام او مقتديان به له فارغيدلو وروسته سجده وکړي،که دوی دا سجده په لمانځه کې وکړي سجده يې نه صحيح کيږي، خو په دې سجدې سره يې لمونځ هم نه فاسديږي.
- که يو څوک په يو مجلس کې يو ايت څو ځله تلاوت کړي، نو هغه ته يوه سجده کافي ده.
- که چا په يو مجلس کې د سجدې آيت وواېه، بيا يې مجلس بدل کړ او هغه آيت يې بيا وواېه نو په داسې شخص په هر ځل تلاوت سره سجدې واجبيږي.
- مجلس په دې سره بد ليږي چې دهغه ځای څخه بل ځای ته منتقل شي. د خونې يا مسجد کونجونه ديو مجلس په حکم کې دي که هريو له خونې يا مسجد لوی وي يا وړوکی.
- دا مکروه کار دی چې څوک داسې سورت تلاوت کړي چې د سجدې آيت پکې وي خو د سجدې آيت پريږ دي او ويې نه وايي.
- هر څه چې د لمانځه لپاره شرط دي د سجدې تلاوت لپاره هم شرط دي لکه اودس لرل، پاک جامې، پاک ځای، مخ قبلې ته اړول اوداسې نور.
- که د چا په ذمه سره د تلاوت زياتې سجدې وي بايد چه ادا يې کړي که يې ادا نه کړې ګنهګار دی.

**د څوارلسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

د تلاوت سجده واجب ده.

په قرآن کريم کې د تلاوت سجدې څوارلس آيتونه دي.

د تلاوت سجده د سجدې د آيت په لوستلو او اوريدلو سره لازميږي.

د تلاوت سجدې څو ځايونه دادي، الأعراف، الرعد، النحل، الأسراء، مريم، الحج، الفرقان، النمل، الم السجده.

**لوست: پنځلسم**

**سرلیک: د سهوې سجده(۱)**

مخ:

وخت: دري درسي ساعتونه

د لوست موخې:

زده کوونکي باید:

۱– د سهوې سجده و پيژني.

۲– د سهوې سجدې پر احکامو او مسائلو وپوهيږي.

۳– د سهوې سجدې نوروته توضيح کړی شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د سهوې تعريف**

سهوه په لغت کې د شي هيريدلو او ورڅخه د غفلت کولو ته وايي

په لمانځه کې سهوه: هغه خلل او نقصان ته ويل کيږي چې په لمانځه کې د لمونځ کوونکي له خوا سهوا سرته رسيږي. د لمانځه په پای کې سجده کول دهغه جبران دی.

**په لاندې صورتونو کې د سهوې سجده واجبيږي:**

- که يې په هيره د فاتحې سورت لوستل د فرضو په دوو لومړنيو يا يوه رکعت کې پريښودل همدا شان که د نفلو يا وترو په هر يوه رکعت کې د فاتحې سورت لوستل پريږ دي.
- که يې په هيره سره د فرضو په لومړنيو دوو رکعتونو کې قرائت لوستل پريښودل او په وروستيو دوو رکعتونو کې يې ولوست.
- که يې په هيره سره د فرضو په لومړنيو رکعتونو او يا يوه رکعت کې د فاتحې د سورت ويلو وروسته سورت ويل ورضم نه کړ.
- چې دوه ځله د فاتحې سورت ووايي،ځکه چې ده سورت ويل له خپل ځايه څخه وځنډولو .
- چې يوه سجده وکړي، بيا بل رکعت ته پور ته شي د رکعت له کولو څخه وروسته دوه سجدې وکړي او بيا ورسره دريمه سجده وکړي کومه چې يې پريښې ده، لمونځ يې صحيح دی خو د سهوې سجده ورباندې واجب ده .
- چې په درې رکعتي يا څلور رکعتي لمانځه کې لومړۍ قعده په سهوه سره پريږدي که په فرضو کې وي يا په نفلو کې.
- هغه کس چې په فرض لمانځه کې لومړۍ ناسته پريږ دي او دريم رکعت ته پورته شي سم ودريږي، خپل لمانځه ته دې دوام ورکړي او وروسته دې د سهوې سجده وکړي.

- چې په سهوه سره د تشهد ويل پرېږدي.
- چې په وترو کې د قنوت دعاء پرېږدي.
- چې امام په سري لمونځونوکې جهر وکړي.
- چې امام په جهري لمونځونو کې خفيه (پټ) ، يا په خفيه لمونځونو کې په جهر سره قرائت وکړي .
- چې په لومړۍ ناسته کې په تشهد څه ورزيات کړي، لکه په نبي کريم صلى الله عليه وسلم درود په سهوه سره ووايي، يا دومره اندازه پټه خوله کيني چې يو رکن په هغومره وخت کې اداء کيږي.

**د پنځلسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

د سهوې سجده واجب ده.

د سهوې سجده د واجبو په ترک يا د فرضو په تاخير واجبيږي.

په ورستۍ قعده کې له تشهد نه وروسته سلام اړول کيږي ، ورپسې دوه سجدې اداء کيږي، بيا ور پسې تشهد، درود او دعاء ويل کيږي، په پای کې دواړو خواوو ته سلام ګرځول کيږي.

**لوست: شپاړسم**

**سرلیک: د سهوې سجده(۲)**

**مخ:**

**وخت: دري درسي ساعتونه**

**د لوست موخې:**

**زده کوونکي باید:**

**۱- د سهوې سجدې د لازمیدلو ځایونه وپیژني.**

**۲- د سهوې سجدې له ادا کولو سره علاقه پیدا کړي.**

**۳- د سهوې سجده توضیح او تشریح کړای شي.**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د سهوې د سجدې اړوند مسئلې**

**۱-د امام سهوه په امام او مقتدي دواړو سجده واجبوي. که مقتدي په امام پسې اقتداء کړې وي او سهوه شي، سجده سهوه نه واجبیږي.**

**که مقتدي مسبوق وي او د امام له سلام ګرځولو څخه وروسته خپل لمونځ بشپړوي او سهوه وکړي سجده سهوه ورباندې لازمه ده.**

**۲- که په امام د سهوې سجده وا جبه شي او سجده وکړي ، نو په مقتدي واجب ده چې متابعت یې وکړي. په چا چې د سهوې سجده واجبه شي نو که یې په قصد سره پریږ دي، ګنهګار دی او د لمانځه راګرځول ورباندې واجب دي.**

- **څوک چې سهوا له یوه څخه زیات واجب پریږ دي، د هغه لپاره هم یوځل د سهوې دوه سجدې کفایت کوي.**
- **څوک چې په فرض لمانځه کې لومړی ناسته هیره کړي، تر څو چې سم نیغ نه وي دریدلی، بیرته دې ناستې ته راوګرځي. که د ولاړې حالت ته ورلنډ و نو د سهوې سجده به کوي اوکه ناستې ته ورلنډ و بیا د سهوې سجده ورباندې نشته .**
- **له چا څخه چې په نفلو کې لومړی ناسته هیره شوه، نو ناستې ته دې راوګرځي سره له دې که سم نیغ دریدلی وي، په پای کې دې د سهوې سجده وکړي.**
- **او له چا چې وروسته ناسته هیره وي او پورته شي، تر څو چې یې د پنځم رکعت سجده نه وي کړې هغه د بیرته ناستې ته را وګرځي او د سهوې سجده د وکړي.**
- **له چا نه چې وروستی ناسته هیره شي او ودریږي د پنځم رکعت سجده یې هم وکړه نو فرض یې نفل وګرځیدل. ورته په کار دي تر څو د ماسپښین، مازدیګر، ماسختن په لمانځه کې شپږم**

رکعت او په فجر کې څلورم رکعت هم ورسره ملګری کړي د سهوې سجده به وکړي او فرض لمونځ به له سره را وګرځوي.

- څوک چې په وروستی ناسته کې کيني، تشهد ووايي، بيا پورته شي په دې ګومان چې دا يې لومړی ناسته وه هغه د بيرته را وګرځي او سلام دې وګرځوي او تشهد دې نه را ګرځوي او دسهوې سجده د وکړي.
- که يو چا په قصد سلام وګرځاوه، په داسې حال کې چې د سهوې سجده ورباندې لازمه وه، تر څو چې له لمانځه سره يې منافي عمل نوي کړی، لکه له قبلې ګرځيدل اويا خبرې کول نو د سهوې سجده به کوي.
- څوک چې څلور رکعتي لمونځ کوي او په دې شک کې شو چې لمونځ يې تکميل کړی دی،نو سلام يې وګرځاوه بيا وروسته ورپه ياد شوه چې ده دوه رکته کړي دي، نو لمونځ دې له پرينبسي ځای څخه پيل کړي او په پای کې د د سهوې سجده وکړي.

**د شپاړسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

د قيام په حالت کې د فا تحې سورت په پريښودلو، يا له فاتحې نه وروسته د سورت نه ويلو سره د سهوې سجده واجبيږي.

د لومړی قعدې پريښودل يا په وروستی قعده کې د تشهد پريښودلو سره د سهوې سجده واجبيږي.

هو! په وترو کې  د قنوت په پريښودلو سره د سهوې سجده لازميږي.

هو! د فرضو په تاخير سره  د سهوې سجده لازميږي.

**لوست: اووه لسم**

**سرلیک: مرسته او همکاري**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

موخې:

زده کوونکي باید:

۱– په دې پوهه شي چې له انسانانو سره مرسته او همکاري کول ډېر ثواب لري.

۲– دا درک کړي چې د شریعت خلاف مرسته کول ګناه لري.

۳– د مرستې او همکارۍ په اړوند نورو ته دلیلونه بیان کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

مسلمانان ټول سره ورونه دي، او د یو جسم او بدن حیثیت لري، یو حدیث شریف کې داسې راغلي دي «عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَثَلُ الْمُؤْمِنِينَ فِي تَوَادِّهِمْ، وَتَرَاحُمِهِمْ، وَتَعَاطُفِهِمْ مَثَلُ الْجَسَدِ إِذَا اشْتَكَى مِنْهُ عُضْوٌ تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ الْجَسَدِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى» رواه مسلم. ژباړه: د مومنانو مثال د یو بل سره په محبت، مهرباني او زړه سوخت کې لکه د یو جسد دی، کله چې تري د بدن یو غړی شکایت وکړي–مریض شي– نو ټول بدن ورسره بی خوبه، او د تبې احساس کوي.

او په بل روایت کې راغلي دي عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا، نَفَّسَ اللَّهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الآخِرَةِ، وَمَنْ سَتَرَ عَلَى مُسْلِمٍ، سَتَرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ، وَاللَّهُ فِي عَوْنِ العَبْدِ، مَا كَانَ العَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ» رواه الترمذي، الباني ویلي دي: دا حدیث صحیح دی.

ژباړه: څوک چې له خپل ورور سره د دنیا په سختیو کې مرسته وکړي الله تعالی به پري د قیامت سختی اسانه کړي، او څوک چې په مسلمان باندې پرده واچوی الله تعالی به پري په دنیا او اخرت کې پرده واچوي، او څوک چې د مسلمان سره په سختی کې مرسته وکړي الله تعالی به پری په دنیا او اخرت کې اساني راولي، او الله تعالی د هغه بنده سره مرسته کوي څوک د خپل ورور په مرسته کې بوخت وي.

**د اووه لسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

- الله–جل جلاله– د خلکو سره د مرستې په هکله فرمایلي دي:﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾ د سوره المائدې دویم ایت.
- الله–جل جلاله– له هغه چا سره مرسته کوي چې هغه له نورو سره مرسته کوي.
- مور،پلار،ورونه،اوخویندي له نورو نه زیات حقدار دي چې مرسته ورسره وشي.
- نه، بلکې د ګناه په چارو کې مرسته کول ګناه ده،او هم پري الله ناراضه کیږي.

لوست: اته لسم

سرليک: د اختلاف او بی اتفاقۍ زيانونه

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

موخې:

زده کوونکي باید:

۱- پر دي پوه شي چې اسلام خلک يو والي ته هڅوي.

۲- د اختلاف زيانونه وپيژني او ځان ترينه وژغوري.

۳- د يو والي په اړه له قرآن او سنت څخه دليلونه ذکر کړای شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

ډير دليلونه پر دي شته چې اختلاف په دنيا او اخرت کې ډير زيانونه لري،له هغي څخه به زه يو څو دليلونه راوړم:

الله-جل جلاله- فرمايي﴿وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ وَأُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ (١٠٥) يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ (١٠٦) وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾ (١٠٧)سورة آل عمران.

ژباړه: او د هغو خلکو په شان مه کيږئ چې د ښکاره دليلونو له راتګ وروسته جلا جلا شول او اختلاف يي وکړ، او همدغو خلکو ته لوی عذاب دی(١٠٥)هغه ورځ چې ځينې مخونه سپين کړای شي او ځينې مخونه تور. تورمخو خلکوته به وويل شي چې ايا تاسې له ايمان راوړلو وروسته کافران شوئ؟ نو اوس د خپل کفر په بدل کې عذاب وڅکئ(١٠٦)او کوم کسان چې مخونه يې سپين کړای شوي دي د الله په رحمت کې دي. او تل ترتله به په دې رحمت کې وي.

او په بل ځای کې الله-جل جلاله- فرمايي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ﴾ (١٥٩) سورة الأنعام.

ژباړه: بې له شکه له هغو کسانو سره چې خپل دين يي تار په تار کړی او په جلا جلا لارو تللي دي، ستا هيڅ اړيکې نشته. دهغوي کار الله ته سپارلی شوی دی هغه به يي په خپلو کړنو خبر کړي چې څه يې کول.

﴿عَنْ العِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ، قَالَ: وَعَظَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا بَعْدَ صَلَاةِ الغَدَاةِ مَوْعِظَةً بَلِيغَةً ذَرَفَتْ مِنْهَا العُيُونُ وَوَجِلَتْ مِنْهَا القُلُوبُ، فَقَالَ رَجُلٌ: إِنَّ هَذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ فَمَاذَا تَعْهَدُ إِلَيْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: «أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللَّهِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ، وَإِنْ عَبْدٌ حَبَشِيٌّ، فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ يَرَى

اخْتِلَافًا كَثِيرًا، وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الأُمُورِ فَإِنَّهَا ضَلَالَةٌ فَمَنْ أَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْكُمْ فَعَلَيْهِ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ المَهْدِيِّينَ، عَضُّوا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ»رواه الترمذي[ص:۴۵\د حديث شميره (۲۶۷۶) وقال الترمذي:«هَذَا حديث صحيح».

ژباړه: له عرباض څخه روایت دی چې: يوه ورځ رسول الله -صلى الله عليه وسلم- مونږ ته د ماسپښين د لمانځه وروسته يو بليغه وعظ وکړ چې له سترګو اوښکي وبهيدي او زړونه ولړزيدل، يو سړي وويل: دا وعظ داسې ده لکه رخصتيدونکې انسان، ای د الله رسوله ته مونږ ته په څه وصيت کوی؟ ويويل: زه تاسو ته په تقوا، اوريدو او منلو باندې وصيت کوم، اګر که -دا مسئول ستاسو- يو حبشې غلام وي، ځکه څوک چې له تاسو څخه ژوندی پاتي شي زيات اختلاف به ويني، او د نوو پيدا شوو شيانو- په دين کې- څخه ځانونه وژغورئ، ځکه دا ګمراهي ده، او که په چا هم داسې وخت راغی نو زما په سنت او زما د خليفګانو په سنت دي منګولي خښې کړي،او د ژامو په غاښونو دي کلک ونيسي.

**د اته لسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

الف: لاندې تش ځايونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱ – امر

۲ – دښمنی

۳– برکت

ب: د پورتني آيت ژباړه ووایاست:

ځواب: او د الله -جل جلاله- په رسی (قرآنکريم) باندې منګلې ولګوئ، او بې اتفاقي مه کوئ.

**لوست: نولسم**

**سرليک: بد ملگرى**

مخ:

وخت: ځلور درسي ساعتونه

موخې:

**زده کوونکي باید:**

**۱–ښه او بد ملگرى وپيژني.**

**۲–د بد ملگرې تاوانونه او ضررونه درک کړای شي.**

**۳–وکولای شي چې د ښه او بد ملگري په اړه دليلونه ذکر کړای شي.**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

**د ښه ملگري يو لړ صفتونه دادي:**

**۱–چې اسلامي ارزښتونه په پام کې نيسي.**

**۲–هوښيار او د کارونو په ترييولو پوهيږي.**

**۳–څه چې د ځان لپاره غوره کوي له ملگري لپاره يي هم غوره کوي.**

**۴–هميشه د نورو د حقوقو خيال ساتي.**

**۵–خپله او خپل ملگري الله –جل جلاله– طرف ته راکاږي، او ښو کارونو په لوري يې هڅوي.**

**او د بد ملگري يو لړ صفتونه:**

**۱– بى عقله او جاهله وي.**

**۲– فاسق او د الله نه نه ويريدونکى وي.**

**۳– مور او پلار ترينه بيزاره وي.**

**۴– که متعلم وي نو د درسونو په اړوند هيڅ پروا نه کوي.**

**۵– خلک پري باور نه لري او خلک ترينه نفرت کوي.**

**۶– ځينو پوهانو يي مشابهت له هغه ماشي سره ورکوي چې کله دي وچيچي زيان يي بيا وروسته معلوميږي.**

**۷– بد ملگرى خلک خواهشاتو ته راکاږي.**

**انسان څه بايد وکړي؟**

**دا خبره جوته ده چې انسان يو ټولنيز مخلوق دى، نو د ځان لپاره داسي ملگرى غوره کړي چې د نيکو کارونو طرف ته يي سوق کړي، قرآني ارشاد هم همدا دى چې فرمايي:** ﴿وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ **سورة الكهف الآية:۲۸**

ژباړه: او بند کړه نفس خپل له هغو کسانو سره چې راغواړي او عبادت د خپل رب کوي په سهار او بیگا کې د الله –جل جلاله– رضامندي طلبوي، او نه دي تیریږي سترگې ستا له دوي نه، چې ته غواړي زینت د دنیا. یعنی ددي غریبو خلکو څخه مه تیریږه چې په دنیوي لحاظ کمزوري وي.

نو باید انسان هغه خلک غوره کړي چې همیشه د الله–جل جلاله– په عبادت کې مشغول وي،ذکر کوي،قرآن لولي،په خپلو لمونځونو همیشه والی کوي، د حلالو او حرامو تمییز کوي،د خالق او مخلوق حقونه پیژني اگر که د دنیا په لحاظ ډیر غریب وي.

عَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «لَا تُصَاحِبْ إِلَّا مُؤْمِنًا، وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ» رواه الترمذي.

ژباړه: له ابی سعید الخدري–رضي الله عنه– څخه روایت دی چې ده له رسول الله –صلی الله علیه وسلم– څخه اوریدلې دې چې فرمایلي دي: ملگرتیا مه کوه مگرد مومن سره، او ستا طعام دي نه خورې مگر تقوا لرونکی وگړی.

**د نو لسم لوست د پوښتنو ځوابونه**

– رسول الله –صلی الله علیه وسلم– داسي فرمایلي: د نیک شخص ملگرتیا د عطر پلورونکي په څیر ده.

– د بد شخص ملگرتیا د آهنگر په څیر ده.

– ډیري گټي لري، له هغې جملي څخه نیک شخص په ښو کارونو هڅونه کوي،او له بدو څخه ژغورنه، ښه اخلاق لري، د ملگري خیال ساتي، له ناروا څخه ډډه کوي،همیشه له الله –جل جلاله– څخه ویریږي.

– مونږ له نیک شخص سره ملگرتیا کول غواړو.

**لوست: شلم**

**سرليک: د دين ستنه**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

د لوست موخې:

زده کوونکي بايد:

۱- دا وپيژني چې لمونځ د اسلام دويم رکن دی.

۲- د لمانځه د ادا کولو په طريقه سره و پوهيږي.

۳- د لمانځه ادا کولو طريقه بل چاته بيان کړی شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

مسلمان بايد د لمونځ په اهميت پوه شي،د لمانځه وقتونه،شرطونه،ارکان او واجبات وپيژني،او لمونځ وروسته کول ورته بغير له کوم عذر څخه روا نه دي.

سم لمونځ انسان له بدو کارونو څخه ژغوري، الله -جل جلاله- فرمايي: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَاةَ إِنَّ الصَّلَاةَ تَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ وَلَذِكْرُ اللَّهِ أَكْبَرُ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ﴾ [سورة العنکبوت : ۴۵ ]ژباړه:او لمونځ و دروه بې له شکه لمونځ د بې حيا يې او ناروا کارونو مخه نيسي او د الله ياد له هر څه نه ډير لوی دی او الله ته ستاسې کړنې ډيرې ښې معلومې دي.

هدف هغه لمونځ دی چې خشوع او عاجزي پکې وي او هغه څوک چې لمونځ ضايع کوي د شهواتو اړخ ته زور کوي تاوانيان دي، پدې اړه الله -جل جلاله- فرمايي: ﴿فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا﴾ [ سورة مريم : ۵۹ ]

ژباړه:له هغوی وروسته داسې نا اهله خلک پاتې شول چې لمونځ ضايع او د نفسي غوښتنو پسې ولاړل نو ژربه د بې لياری له عاقبت سره مخ شي.

لمونځ د سختی پروخت انسان ته ارامې وربښي، هر څومره چې حالات سخت وي بايد لمونځ وکړي، د جهاد په حالاتو کې د خوف(ويرې)لمونځ په ځانګړو شرايطو او حالاتو باندې اداءکړی شي. څوک چې د لمانځه اهتمام کوي کاميابيږي، الله -جل جلاله- فرمايي: ﴿قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ (۱) الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ(۲)﴾ ژباړه: په تحقيق سره کامياب دي مومنان،هغه کسان چې دوی په خپلو لمونځونو کې عاجزي کوي.

لمونځ هغه عمل دی چې لومړی ترې د قيامت په ورځ حساب غوښتل کيږي،که چيرته دا سم و نو نورو عملونو ته يې هم کتل کيږي، او که داسې نه و نو ټول عملونه ورته واپس کولای شي.

**د شلم لوست د پوښتنو ځوابونه**

ـــ یعنی ټول دین په لمانځه ولاړ دی،که چیرته د انسان لمونځ سم و نو نورو عملونو ته به یي کتل کیږی، که لمونځ یي سم نه و نو نور عملونه به ورته واپس کړی شي.

ـــ رسول الله –صلی الله علیه وسلم– داسي فرمایلي دي: که چیرې تاسو کې د یوه کور مخکې ویاله بهیږي،هغه پکې هره ورځ پنځه ځلې لامبي، آیا دده په بدن کې به څه خیری پاتې شي؟ ویې ویل: نه،رسول الله –صلی الله علیه وسلم– وفرمایل: لمونځ هم ددې په څیر دی، هغه څوک چې پنځه وخته لمونځ کوي، الله –جل جلاله– ورته گناهونه ښښي.

ـــ د لمانځه گټې زیاتې دي، له هغې جملې څخه د دین ساتنه، له ناروا و څخه منع کېدل، د مسلمان او کافرتر منځ فرق،د گناهونو ښښل او داسې نور.

**لوست: یو ویشتم**

**سرلیک: د وخت ارزښت**

مخ:

وخت: څلور درسي ساعتونه

د لوست موخې:

زده کوونکي باید:

۱- د وخت په ارزښت پوه شي.

۲- دا درک کړي چې د وخت ضایع کول ستونزې رامنځ ته کوي.

۳- خپل کاري وختونه تنظم کړی شي.

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات**

وخت یو لوی نعمت او امانت دی چې ډېر خلک یې ضایع کوي، رسول الله -صلی الله علیه وسلم- پدې اړوند داسې فرمایي: «عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنْ النَّاسِ الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ». رواه البخاري

ژباړه: له ابن عباس -رضي الله عنهما- څخه روایت دی چې نبی کریم -صلی الله علیه وسلم- فرمایلي دي: دوه نعمتونه دي چې ډېر خلک په هغې کې په تاوان او زیان کې دي یو صحت (روغتیا)، او بل وخت دی.

وخت یوه ځانګړتیا لري چې کله تیر شي بیا نه راځي،دا مونږ دیته هڅوي چې د هرې لحظې څخه یې ګټه پورته کړو.

«عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ وَهُوَ يَعِظُهُ: اغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ : شَبَابَكَ قَبْلَ هِرَمِكَ، وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقَمِكَ ، وَغِنَاءَكَ قَبْلَ فَقْرِكَ، وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ، وَحَيَاتَكَ قَبْلَ مَوْتِكَ. » رواه الترمذي.

ژباړه: له ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا څخه روایت دی وایي چې رسول الله -صلی الله علیه وسلم- یو سړي ته نصیحت کاوه ویې فرمایل: پنځه شیزونه له پنځو څخه مخکې غنیمت وګڼه او ګټه ترې تر لاسه کړه : ځوانې مخکې له بوډا والي څخه ، او صحت مخکې له مریضتیا څخه ،اومالداري مخکې له بې وزلۍ څخه ،او فارغه وخت مخکې له مشغولتیا څخه ،او ژوند مخکې له مرګ څخه.عبد الله بْنُ عُمَرَ-رضي الله عنهما- به ویل: «إِذَا أَمْسَيْتَ فَلاَ تَنْتَظِرِ الصَّبَاحَ ، وَإِذَا أَصْبَحْتَ فَلاَ تَنْتَظِرِ الْمَسَاءَ... ». رواه البخارى. ژباړه: کله چې دې بیګاه کړ نو د سهار انتظار مه کوه، او کله چې دې سهار کړ بیا د بیګا انتظار مه کوه.

هر هغه ځوک چې په لارو او کوڅو کې بې له کوم هدفه ګرزي او يا ساعتونه ساعتونه بې ځايه ناستي کوي او يا په داسې کارونو مشغول وي چې الله –جل جلاله– پرې نه خوشحاليږي دا ټول د وخت ضايع کول دي.

هغه ځوک چې د وخت اهميت نه پيژني د قيامت په ورځ به افسوس او ارمان کوي چې ولې مې وخت ضايع کړی دی، الله –جل جلاله– فرمايي: ﴿وَجِيءَ يَوْمَئِذٍ بِجَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ وَأَنَّى لَهُ الذِّكْرَى ﴿٢٣﴾ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي قَدَّمْتُ لِحَيَاتِي﴾ (٢۴) سورة الفجر.

ژباړه: او دوزخ مخامخ راوړل شي . نو په همدې ورځ به انسان وپوهيږي، خو پوهه به يې څه ګټه ورته وکړي؟ وايي به کاشکې چې: ددغه ژوند لپاره يې څه وړاندې ليږلی وی.

هو ښياره انسان هلته پښيمانه کيږي چې څه ګټه ورته ولري نه هلته چې غير له تاوان څخه بل څه نه وي.

او په بل ځای کې الله –جل جلاله– فرمايي: ﴿ أَن تَقُولَ نَفْسٌ يَا حَسْرَتَى علَى مَا فَرَّطتُ فِي جَنبِ اللَّهِ وَإِن كُنتُ لَمِنَ السَّاخِرِينَ﴾ (۵٦)سورة الزمر.

ژباړه: هسې نه چې بيابه وايي: افسوس زما په بې پروايې چې د الله په هکله مې کړې ده او په ريښتيا چې زه له ملنډو وهونکو څخه وم.

نو هوښيار انسان هغه دی چې په خپل تير ضايع شوی وخت پښيماني هغه ځای کې ځرګنده کړي چې فايده لري نه په هغه ځای کې چې بې فايدې وي.

د يوويشتم لوست د پوښتنو ځوابونه

- رسول الله –صلی الله عليه وسلم– فرمايلي دي: دوه نعمتونه دي چې زيات خلک ترينه بې خبره دي: روغتيا او وخت.
- لمونځونه په خپل وخت ادا کړو،ښوونځي ته په خپل وخت لاړ شو، کورنی دنده په خپل وخت وليکو...
- د نن کار بايد نن سرته ورسوو، او سبا ته يې پرينږدو.

**لوست:دوه ویشتم**

**سرلیک: د سلام فضایل**

**مخ:**

**وخت:** څلور درسي ساعتونه

**موخې:**

**زده کوونکي باید:**

**پوه شي چې د سلام اچول سنت اوځواب یې واجب دی.**

**دا درک کړي چې سلام اچول ثواب لري او د توضع علامه ده.**

**د سلام اچولو او د هغې فضایلو لپاره دلایل بیان کړی شي.**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات :**

**د سلام فضایل:د سلام د فضیلت په اړه زیات آیتونه او احادیث راغلي دي لکه څرنګه چې الله جل جلاله فرمايي:﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لاَ تَدْخُلُوا بُيُوتاً غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّى تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَى أَهْلِهَا﴾ [النور : ۲۷]**

**ژباړه : ای مومنانو ! له خپلو کورونو پرته نورو کورونو ته تر هغو مه ننوځئ ، چې اجازه یې تر لاسه او پر اوسیدونکو یې سلام وواېې.اوهمدارنګه په بل ځای کې فرمايي : ﴿فَإِذَا دَخَلْتُمْ بُيُوتاً فَسَلِّمُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِنْ عِنْدِ اللهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً﴾ [ النور: ٦١ ]ژباړه:کله چې خپلو کورونوته ننوځئ نو پر خپلو ځانونو د هغو برکتناکو او پاکیزه ټکو سلام وواېې چې د الله له لوري ټاکل شوی دی.**

**اوهمدارنګه رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:**

**وعن عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما : أنَّ رجلاً سأل رسول الله – صلى الله عليه وسلم–: أيُّ الإسْلاَمِ خَيْرٌ ؟ قَالَ : «تُطْعِمُ الطَّعَامَ ، وَتَقْرَأُ السَّلاَمَ عَلَى مَنْ عَرَفْتَ وَمَنْ لَمْ تَعْرِفْ» متفقٌ عَلَيْه .**

**ژباړه:له عبد الله بن عمرو بن العاص نه روایت دی چې یو سړي له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه کوم خصلت د اسلام غوره دی هغه وفرمایل چې ډوډۍ ورکړې خلکوته اوسلام واچوې پرهغه چا چې ته یې پیژنې او یایې نه پیژنې.**

**وعن أَبي عُمَارة البراءِ بن عازِبٍ رضي الله عنهما ، قَالَ : أمرنا رسول الله – صلى الله عليه وسلم – بِسَبْعٍ : «بِعِيَادَةِ المَرِيضِ ، وَاتِّبَاعِ الجَنَائِزِ ، وَتَشْمِيتِ العَاطِسِ ، وَنَصْرِ الضَّعِيفِ ، وَعَوْنِ المَظْلُومِ ، وَإفْشَاءِ السَّلاَمِ ، وَإبْرَارِ المُقسِمِ ». متفقٌ عَلَيْهِ**

**ژباړه : له ابي عماره البراء بن عازب رضي الله عنهما ، نه روایت دی هغه وایي چې مونږ ته رسول الله صلی الله علیه وسلم امر کړی په اوو څیزونو : دمریض په پوښتنه ، دجنازې سره تګ، پرنجیدونکي ته ځواب**

ورکول، له ضعیف سره کومک کول، له مظلوم سره مرسته کول، د سلام خپرول او له قسم کونکي سره نیکي کول.

**د دوه ویشتم لوست د پوښتنو ځوا بونه:**

ــ سلام اچول سنت اوځواب ورکول واجب دي.

ــ سلام د اخلاص، امن اومینې پیغام دی او د مسلمانانو تر منځ مینه او محبت پیدا کوي.

ــ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: تر څو چې ایمان را نه وړئ جنت ته نشی تللی، او مومنان نشی کیدای تر څو چې په خپلو منځونو کې مینه او محبت ونه لرئ، آیا تاسې ته داسې څه ونه ښایم چې ستاسې په منځونو کې مینه او محبت را ولي؟

صحابه وو وویل : ولې نه .

پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په خپلو منځونو کې سلام اچول زیات کړئ.

په سلام اچولوسره مسلمان ته دیرش نیکۍ ورکول کیږي.

**لوست: درویشتم**

**سرلیک: له غیبت نه ځان ژغورل**

**مخ:**

**وخت:** څلور درسي ساعتونه

**د لوست موخې:**

**زده کوونکي باید:**

**۱–دا وپیژني چې د مسلمان ورور غیبت کول حرام او د هغې دغوښو خوړلو په څیر دي.**

**۲–پوه شي چې د غیبت او بهتان ترمنځ څه توپیر دی.**

**۳–د غیبت دحرمت لپاره دلایل بیان کړی شي .**

**د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د اسلام په مقدس دین کې له غیبت کولو څخه منع شوې ده اوغیبت کول یې لویه گناه گڼلې او دخپل ورور د غوښو خوړلو په شان یې بللی، لکه څرنگه چې الله جل جلاله فرمايي﴿وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللهَ إِنَّ اللهَ تَوَّابٌ رَحِيمٌ﴾ (سورت حجرات(۱۲)ایت)**

**ژباړه: اوځینې د ځینو نورو غیبت مه کوئ آیا تاسې به خوښه کړئ چې د خپل ورور غوښه و خورئ ؟ بده به یې وگڼی . له الله نه و ډار شئ بې له شکه چې الله ښه توبه منونکی مهربان دی.**

**او همدارنگه پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمايي:**

**(عن أبي هريرة أن رسول الله {صلى الله عليه وسلم} قال اتدرون ما الغيبة قالوا الله ورسوله أعلم قال ذكرك أخاك بما يكره قيل أفرأيت ان كان في أخي ما أقول قال إن كان فيه ما تقول فقد اغتبته وإن لم يكن فيه ما تقول فقد بهته)**

**له أبي هريرة –رضی الله عنه– نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي تاسې پوهیږی چې غیبت څه ته ویل کیږي؟ صحابوو وویل: چې الله او رسول د هغه ښه پوهیږي، ده وویل د خپل ورور یادول په داسې شکل چې دی یې بد وگڼي، هغه وویل خبر را کړه که هغه څه چې زه یې وایم زماپه ورور کې موجود وي ، رسول الله وفرمایل: که ته داسې څه وایې چې ستا په ورور کې موجود وي نو غیبت دی اوکه داسې څه وایې چې په ده کې مو جود نه وي نو هغه بهتان دی.**

**غیبت کول د انسان نیک عملونه له منځه وړي:**

**امام غزالي په خپل کتاب إحياء علوم الدين کې لیکې چې یو سړی امام حسن بصري ته راغی او ویویل: ای ابو سعیده! فلانې ستا غیبت وکړ، حسن بصري یوه ټوکری خرما ورته راوړه او ورته یې وویل چې: هغه سړې**

ته لاړ شه(چاچې زما غیبت کړی دی) ورته ووایه تا خپلې نیکی ماته راوبخلي، د هغې په مقابل کې ما تاته دا خرما درکړي.

له پورتنی قصې موخه داده چې دنیوې کار اسانه دی ولې ځیني وګړي خپلي نیکیاني نورو ته ډالی کوي، که چیرته یو کینه ګر وګړی له چا سره کینه وکړي، او یا ستا مخالف ستا په اړوند ستا مخالف خبرې وکړي نو اندیخنه مه کوه بلکې دا د خپلې نیکیو جز وګڼه، او پوهه شه چې موسی–علیه السلام– وویل: زما ربه له تا څخه یوه غوښتنه لرم – الله–جل جلاله– پردې ښه پوهیده چې څه غواړي– ویې فرمایل: غوښتنه دې څه ده؟ موسی –علیه السلام– وویل: د خلکو ژبې له ما څخه بندې کړه، الله –جل جلاله–وفرمایل: زما دې په خپل عزت قسم وي چې دا کار ما د خپل ځان په اړه نه دی کړی چې ما هغوي پیدا کړي دي، هغوي ته روزې ورکوم، ولې هغوي بیاهم ماته ډیري سپکې او سپور وایي.

**د درویشتم لوست د پوښتنو ځوا بونه:**

- د یو چا په غیاب کې د هغه نیمګړتیا بیانولوته غیبت ویل کیږي.
- نه، غیبت ناروا دی.
- غیبت کول د مړه ورور غوښې خوړلو په څیر دي.
- نه، د غیبت په مجلسونو کې نا سته روا نه ده.